# چلزینه

## په کندهار کې یو تاریخي او د لیدلو وړ ځای

زموږ ګران هیواد افغانستان د اسیا یو لرغونی ملك او داسې تاریخي سیمه ده
چې د مدنیت نښې ئې و شپږ زرو کالو ته رسیږي .

په دې اوږده فاصله کې آیا ممکنه ده چې زموږ نیکه ګانو دې د خپلو فکرو
او خپلو لاسو عاملانه ادبي او عمراني او نور ژوندانه آثار زمانې ته نه وي سپارلي؟
بې له شکه سته چې سپارلي دي خو له بده مرغه زمانې دا امانتونه بېخي او
حوادثو ورا ضایع کړي یا ئې په نامعلومو کونجو کې تر خاورو لاندې کړي دي کوم
آثار چې اوس موږ وینو یا ئې دیوې ویرانې څخه په لاس راوړو هغه بېخپله د دغو
آثارو نیمګړاله اهمیت دی چې تر دې وخته ئې ځان راساتلی او نور به هم
تر څه چې تر کله پاته وي .

بې له کومه موږ په کندهار کې د چل زینې بنامه (چې منظره ئې د دې مجلې
د پښتني په اوم ری مخ کې وینئ) یو د پر بن نقش و نګار دالان او هغه ته ورختلو
څو ځلو پښت زینې وینو دا یادګار په کندهار کې د لیدلو وړ او تاریخي ځای دی
چې د کندهار د احمد شاهي ښار څخه او پر بخ لورته په درې کیلومتري کې د
کندهار د پخواني هغه ښار ومخ ته واقع دی چې د سرپوزې دغره په لمن کې د
هوتکو تر سلطنت پورې ودان ؤ ، چلزینه بېخپله د غه سرپوزې دغره په د مخني
برخه کې پر یو سم ځای باندی چې د یوه کوچني غر کې څخه عبارت دی بنا
سوې ده ، د چل زینې په جوړښت کې طبیعت هم ملګرتیا کړې ده ځکه د غره دا برخه
د یوې پزې په شکل واقع ده چې د زینو ختلو د پاره بالکل د یوه اهمداسې
د یوه دالان د پاره .

د دغه د پر بن اطاق چې ور زینې ور ختلي دي پر دننه او د باندي برخه د مغولي بابر
د کورنۍ د فتوحاتو خبري کیندل سوي او لیکل سوي دي او هم د دالان پر دواړو
خواؤ د درو ځناورو او مجسمې ولاړې دي که څه هم اوس ئې سرونه نسته غالباً
د درو زمریانو مجسمې دي .

[د پښتني د دریم مخ وګوري .]

# کندهار

میاشتنی خپرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

## ا، م «کرزی»

اداره: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعی څنګ ته

د ۱۳۴۱ المریز کال د [جدی] میاشت

د ۱۹۶۳ میلادی کال د [جنوری] میاشت

د دریم کال ۱۰ ګڼه

پرله پسې ګڼه [۳۴]

کالنی «بیه»

په کندهار کی [۲۸] افغانی

په دننه مملکت کی [۳۲] »

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

## ددې ګڼې مضامین

# ملي وحدت

څرنګه چې فردي ژوند انساني خواهشات نسي بشپړ کولای ځکه نو انسان په اوموړي سر کې کورنی ژوند غوره کړ دا ژنیاو د ډېرښت او د طبیعي حوادثو د پېښېدو له امله کورنۍ په قبیلې بدلې شوې او قبیلوي ژوند هم وروسته تر ډېرو پېړیو په ولسي ژوند کې منحل شو کله چې انسانان د مځکې په هره ګوښه کې ډېر شول او ددوی په منځ کې یو له بله حقوقي تعاملات پیدا شول نو نو د عمومي مهاجرتونو د پاره

زمینه مساعده نه وه او نه د زور او غلبې په اساس سره ژوند کېدای شوای . ځکه نو ددې احتیاج له امله د ولس په دماغ کې دا فکر پیدا شو چې باید په یوه ټاکلې مځکه کې خپل ژوند وکړي د حدودو او ثغورو تر ټاکلو وروسته ولسونه په یوه سیمه کې سره راټول شول او د خپل ژوند اړه چارو د تنظیم د پاره ئې ښه تر ا د وحدت او یووالي لاسونه سره ورکړل او ددې د پاره چې په بین المللي ژوند کې تعارف او پېژندګلوي حاصل شي او هم د ملي ژوند د بقا او پرمختګ د پاره جذبات پیدا شي نو ملي سبغې په وجود راغلې، چې هم دغه ملي سبغې دي چې تر ننه ورځ پورې ئې ملتونه یو له بله سره ساتلي او ددوی د موجودیت د بقا او پرمختګ سبب ګرځېدلی دی .

دا چې کوم عامل د ملي وحدت اساس او بنیاد تشکیلوي هغه په لږ شاتني وڅېړم، په اوموړي سر کې خو انسانان نش د ځان د بقا او مادي منافعو له پاره سره راټول شول او هم دا عات د اجتماع په جوړېدو د مدنیت په سازولو او ملي وحدت کې خورا اوږد لاس لري. که چېرې د انسانانو په منځ کې مادي اشتراك موجود نه وي نو د هغو راټولېدل ګران کار څه بلکه غیر ممکن دی او د تاریخ له ابتدا څخه بیا تر اوسه پورې نو لو اجتماعي او بین المللي شخړي او جنجالونه له همدې ټکي څخه زېږېدلي او را پیدا شوي دي څو د مادي ګټې د پاره عادلانه لاری پیدا کیږی تر هغو پورې به دنیا د کشمکش او پرېشانیو صحنه وي . دوهم خورا غټ عامل چې د یوه ملت او اجتماع شیرازه راټولوي هغه دین او مذهب دی د بشري ژوند د پاره نه یوازې ضروري او لازمي شی دی بلکه دا یو فطري امر دی انسانان په خامخا په ژوند کې عقیده او مذهب لري ځکه دین او مذهب د فردي او اجتماعي ژوند خورا ښه لارښوونکی او د سعادت و خوانه د ټولو رهبر دی نېکمرغه ده یوه جامعه چې افراد ئې د یوه دین خاوندان او د یوې مذهبي عقیده پیروان وي . دریم د ملي وحدت رکن نژاد او ژبه ده نژاد هم په ملي وحدت کې زښته اثر لري

اما د جنګونو او فتوحاتو له اثره ډېر نژادونه په نورو هیوادونو کي مشت شوي دي چي اوس ئې د هغه ملت رنګ او

صبغه منلي ده او د نړۍ په هیوادونو کي به ډېر لږ داسي ملت وموندل شي چي هغه دي خالص له یوه نژاده جوړ شوي وي اما

ژبه د ملي وحدت دپاره خورا ضرور او مهم عامل دی ځکه انسانان د یو هېواد او یو هوا دپاره په اجتماعي ژوند کي و

یوې ژبې ته ضرورت لري. کهچیري د یوه ملت په منځ کي څو مختلفي ژبې جاري وي او یوه عامه مسلطه ژبه و نه لري

نو ددوی په منځ کي هیڅ کله فکري وحدت راتللای نشي ځکه ددوی خپل باطني معنویات او نظریات یو بل ته سي

منلای و نشي چي د جامعي افراد یو له بله پخپلو نظریاتو

او افکارو یوه نه شول دلته هم د ملي وحدت په تمانو کي درز

پیدا کیږي او هم د ترقي او اجتماعي پرمختیګونو مخه نیول کیږي او بل غښتلو اوانو لا دادي چي علم او پوهنه چي د

یوه انسان دپاره مهم او ضروري بلل شوي دي هغه پرديه ژبه

کي به ډېر مشکل دول په لاس راځي ددي دپاره چي د

یوې جامعي افراد ټول عالم او پوه وي باید یوه ژبه په جامعه

کي مسلطه او علمي وي څو د یوه واس خلک و کړای سي

چي دخپلي ژبې د علمي منبع څخه خیله ښه استفاده کړي

په دي صورت به د ملي فکر څخه الهام اخستل سوي وي او د فکري نشئت څخه به د جامعي مخه و نیول شي دتو لو به یو فکر یو الهام او یو مد ژوند

ایډیالوژي وي که چیري د جامعي افراد په پېلو پېلو ژبو د یوه ملت په سیاسي حدودو

کي سره ږغیږي او نقافتي منابع سره جلا وي نو هلته د فکر او طرز هم بېل او دژوندانه مفکوره هم بیخي سره جلا وي

په داسي هیوادونو کي د ملي وحدت مزي کمزوري د ترقي او تمدن کاروان په کوده پښه ډېر خیله لار وهي ځکه نو د ملي

وحدت دپاره د اجتماعي ضرورت له مخي په یوه ملت کي د یوې ژبې عامېدل او علمي کېدل ضروري بلل شوي

دي. څرنګه چي یو شاعر وائي:

قوم را اندیشه‌ها باید یکی
در ضمیرش مدعا باید یکی

[illegible] ام د کرزی

له د کلچر نیوز آف انډیا ، څخه :

مترجم : محمد موسی «معروفی»

# د کلتور په باره کې د ښاغلی «نهرو»

## یوه وینا

> دا وینا ښاغلی نهرو د یوې کلتوري مؤسسې د پرانیستلو په وخت کې واوروله . که څه هم له هغه وخت څخه یوه موده تېره شوې ده ، اما د خورا علمي ټکو د درلودلو په نسبت زما خوښه او په پښتو مې را واړوله .

زه دلته هم له خوشالی او هم له ډېر تشویش سره چې زما په مغز کې ځاله اړی دلته راغلی یم . خوشاله په دې یم چې ما هر وخت زمینه برابره کړې ده چې د هندوستان کلتوري روابط نه یوازې د

ختیځوالو او په بحر کاونیانو بلکه د نړۍ نړیو سره ټینګ کړم . د داسې روابطو ټینګېده یو داسې موضوع نه ده چې د هرچا په غوښتلو یا نه غوښتلو او یا ښه بللو یا نه بللو پورې اړه ولري بلکه اوسنی

اوضاع سړی مجبوروي کوي چې داسې روابط منځ ته راوړي که نه نو د یو بل سره نا اوره نتیجه به ئې ښه مخه ورشي .

اوس نو غواړم هغه تشویش په ښکاره ووایم چې زما په مغز کې راپورته کېږي . راز راز سوالونه را نه غونډېږي

کله یا خورا ریښتیا ده او کله یا هغه سوالونه چې د نړۍ د اوسنیو شاوخوا جریاناتو او پېښو څخه را پیدا شوي وي

فکر نه راځي .
موږ خو د یو بل ، د ملتونو د افرادو او د ټولنو د پېژندنې په باره کې کوښښ کړی دی په

مهمه ده چې موږ یو بل سره وپېژنو او د یو بل څخه حقایق زده کړو . موږ چې د تاریخ پاڼې اړوو او یا د نړۍ اوسنۍ پېښې

په غور ګورو نو زه بې ځایه دي نتیجې ته رسېږم چې هغه خلک چې د ډېر شناخت سره اړي دي هغه د ډېر جنګ سره کوي که په

اروپا کې وي یا په آسیا کې خو هغه مملکتونه څه راسره ګاونډي او یو بل محرم کېږي چې د دروازه په دروازه او یا د دېوال په دېوال

دي ، که د دوی یو بل د نږدې سره بلد وي خو دا بلدتوب بیا هم د دوی په منځ کې د یوه کې کومک او خېښۍ حیثیت ( کرښه )

نه اچوي . نو آیا زموږ ددې طرز العمل ورا نه او غلطه برخه کومه ده ؟
دا وړانه توپ نه ده پېښه بلکه

د تاریخ پاڼې ئې سپاره ښوي . هغه سړي چې یو ملت کړي ده او یا هغه ایت چې دې دي یا کوم بل سړال د باره ترل شوي دي ، آیا

- ضعه ورانه نه ده اصلاح شوی که
دغه نیت پر ځغلار نه دی نو پول
سوی چې باید پر ټللای وای؟
نو د داسې سوالو په راپورته

کېدلو کې موږ بیا د ثقافتي
روابطو سره مخامخ کېږو او
بدې حال کې نا پېره زما ورته
پام شي چې بابا داء کلتور مېچ

خلګ ئې خوراد پر د پر پرژ به
راوړی څاشي دی . او یا ځنه
وختې را به یاد شي چې زه لا
ځوان وم او د جرمني

[KULTAR] پسه مې
وایه، کله بیا د جرمني خلګ
هم را به زده شي چې به جنګ
او با بله وسیله به ئې وهر بخوانه

ددې کلتور غورول غوښته او د
همدغه کلتور د غورېدو او
پېچلو او با خپرولو او مقاومت
پر سر عمومي جنګ وموښت .

هر سړی او هر مملکت د کلتور
په باره کې یو عجیب و غریب

فکر لري نو کله چې د کلتور
روابطو خبره منځ ته راسي د

تیوري او ظاهري شکل له رویه
خورا ګڼوره بلله کېږي خو

په حقیقت کې همدغه حیرا-
نونکې مفکوري دي چې د
... منځ کې د جنګ اور
نازه کړی ... دي چې

سره ښنا حته او خپلوان ئې کړی
د پېګانه توب او مفارقت لارو ورته
چارو کړی . دا چې کلتور واقعاً
څه شي دی؟ خورا اساسي سوال

دی . اما زه پخوان کې د کلتور
دتمرېفولو توان نه وینم ځکه
نه ئې پېژنم که څه هم د پر وی
یا ابز . سړی ئې وینې چې هر

ملت او هر مدنیت خپل خپل
کلتور او مدنیت پر مخ بیائي
په داسې حال کې چې دا مدنیت
دهغو ربښوارو نکی دی چې به

سوواد زرو کلو نو مخ کې په دغه
نسل کې ښځی وی او یا په بل
عبارت دهغو اولنیو او ابتدائي
افکارو په چوکاټ کې پوره

ابښول سوی وی چې او له پلانې
دغه مدنیت پر دا به او زده لار

راسم کړی و .
د بله بلوه سړی ئې وینې چې

بشري خیالات او افکار سره
اخښل سه سدی اعمال او عکس-

العملونه د مفکورو په لېز تغیر
بوښانه وی . زه ګمان کوم چې
په نړۍ کې هیڅ یو داسې کلتور
نسته چې بیخي سپېڅلی او پر

خپل اولنی او ابتدائي حال
پاته او یا د بل کلتور اغېزې
سایه نه وی پرې کړی .. دا نا
ممکنه ده، ځکه کلتور لکه

یو سړی چې په نسل کې نسل نشي
ویلای چې په کوم نژاد یا قوم
اړه لري، د زرو زرو کلو په
تېرېدو کې دراز دراز تحولاتو

او ګډېدو یا اختلاطو نو سره
مخامخ شوی دی .
نو کلتور د پر یا البزا اخښل کېږی
که څه هم دیوه خاص ملت د

کلتور اصلي ربښې په د نفوذ
څښتمانی وی اما ددې سره سره
هغه کلتور هم نافذ او هم منفق
او یا تأثیر بخښونکی دی . که

دغه اخښل کېدل د سولی په
فضا کې وی نو تاوان نه پېښوی

مګر اکثراً د جنګ د پېښېدلو
دلیل ګرزی . کله بیا بوه داسې

دا او خوبه زده نمباسي چې
که هر کلتور داورو ثقافتو تر

اغېزې لاندې راسي او مضمحل کېږي. ځکه نو دا د له پرځان تللنك راغورځوي او له نوروځخه بېځي ځان ماسوا کوي چې بدې

ضرورت دخپلو افکارو د بهرنه ونلو مانع گرزي چې دا بخپله بو نارو غه او غمجن وضعيت دی. په هره موضوع کې، په نېره بيا

هغه موضوعات چې د کلتور سره تعلق اري، ر کود او بخ کرخ او بې حسه پاته کېدل. زبان - رسو نکې دی . هغه کلتورخو

حقيقي ارزښت اري چې د زورو سېږوخاوندوی اما د بوه تا کلي دا بنميکي DYNAMIC خاصيت دراودل هم ورنه لازم

دی. پردې علاوه ثقافت پر نورو ډېرو عواملو باندی تقيه هم اچولې ده . بناٸی هغه چو کاټ چې د ملتونو د پرمختگ په اوله

ځينه کی ودې ته ور کړه سوېدی د جغرافيوی موقعيت، آب و

هوا او د نورو تولو واقع سوو پېښو تر تاثير لاندی وی . د

عربستان کلتور د جغرافيوی موقعيت او صحراو په واسطة

اداره شوی او په هغو کې ئې رشد کړی دی. د هندوستان او باختر کلتور د همااليا او هندوکش د غرو کنډر ځنگلو او ځپانـدو

رودو تر تاثير لاندی دی چې زموږ په ادبياتـو کی لکه کو کياني ځلانده بريښي. که دا دوه کلتوره سره گډ شي نو

بودا سی ښکلی او په زړه پوری ترکيب به جـوړه کړی لکه څـرنگه چې د ادب، موسيقي معماری او نورو کلتوری حوزو

به منـځ کی چې ئې منـځ ته راوړی هم دی .

مگر کله چې يوه د له غواړی پرهغه د له باندی خپل کلتور

تحميل او په زوره ومني چې په طبيعی ډول رشد نـه کوی، په طبيعي ډول خپل چو کاټ نه تراشي او بخپله د ځان ريښې نه

اوبوی، نو چگره او نښته منځ ته راځي. يا په بل عبارت هغه شی

منځ ته راځی چې اساسآ زما ذهنيت او د کلتور په باره کی د

هر ډول تلقی پرخوا ته وی جوړه داشی دافکارو د انزوا او بېلتون

سبب گرزی ځکه بالاخو بيا افکار د نورو د تاثير قبلولو د پاره تياری نه ښکاره کوی .

د هندوستان د تاريخ متعلق زما

نظر په دا ده چې موږ د هندوستان د ودی او پرمختگ او همدا راز دې ملك د ترشا پاته کېدلو او غورځار پدلو اندازه د هغو

کو ښښو ځخه اټکلولای شو چې انديا د نورو په مخ کی د خپلو ذهنيتو، افکارو او خيـالاتو دروازه ارته کړی او يا ترلی

وی. هرڅومره چې ئې دروازه په ځان پسې ترلې ده هغومره سېټيك پاته شوېده . د فرد دلی او تولنې او د هرچا ژوند

خامخا پو دا ينمنيك، متحو له او تكامل کونـکی واقعيت دی هر کوم شی چې دغه دا ينمنيك د تکامل ايديا دروی په حقيقت

کی ژوند پرهاری او تباه کوی . زه په پوره ډرناوی دا وراشې

بييم او که زما خبری چې شخصآ هيڅ چا ته نه دی متوجه، پرچا

بدی نه لگيږی بايد ووايم چې موږ داسی اسوی مذهبونه

در لودلي دي چې هغو پر بشريت
باندې ډېر تاثيرا چولي دي. زما
په ګمان تر او هغو مذاهبو چې
د انسان مغز سټېټيك او متعصب

کړي دي ډېر ډېر کړ کېچن
تاثيرونه ئې نقش کړي دي.
مذاهب خو هم ښه فايده منـد
حقايق وائي اما که بوازي او

بوازي دغه خبره اضافه کاندي
چې تر دغه ځايه بايد ولاړ شوه
نو بيا تو لنه سټېټيك پاته کېږي
چې په نتيجه کې د کلتور پر نه

او پدلو او نه رشد کولو باندي
تماميږي.
آيا نا سي ځرنګه دالاندي دوه
مهم عوامل اندازه کولای سي؟

يو داچې هر سړي، هر ګروپ
او هره تو لنه بايد ځانته په يو
ځای کې يو معلومه ريښه او
معلوم نسب يا شجره ولري. که

يو فرد سطحي او بې نسبه وي نو
د هغه کلتور هم دده د سطحي

شعور په اثر بې نسبه او بې ريښې
وي چې دا دول سړي نو بايد په

سړو کې و نه شمېرو. صرف هغه
ګروپ، يا نژاد، يا تو لنه د

شمېر لوود کېدلای شي چې پخپل
تېر تـاريخ کې د هغو ريښو
خاوندوي کړ مي چې داوسني
نسل د باره د نجر بو او نقل يوه

او به ذخيره بالله کېدلای شي.
نو ناسي که يو يا ست يا تر يوه
ډېر، بايد دغه ريښې ولري که
نه نو ناسي به د هغه شي يو ساده

نمونه او کاپي وګرزي چې په
حقيقت کې ستاسو د باره هيڅ
مفهوم او معنی نه لري.
دوهمه بيا داچې بوازي سړي

به ريښو هم نشي پانېدلای او هم
که غـوادي چې ريښې ئې د
ورستېدلو څخه خلاصي شي او
کتور مېوه ور کړي نو بايدو

تازه هوا او د لمر وړانګو ته ئې
لڅې کړي پداسي صورت کې
نو ريښې وده کوي او ښاخونه
او ګلان را باسي.

اوس به نو محيطي ښاخي داخيال
و کړي چې ناسي ډېور نغيو دوو

حالتو په مينځ کې اندازه و نيو له
امادا کار ډېر ستونخ دی ځکه

بعضي خلک بوازي او بوازي
د ښاخو او ګلانو په ښکلا، نازك

شکل او فريبانه حرکاتو کې
ډوب شي، داڅې لهياده وزی
چې نمو او وده خو اصلاً د
لاندېنيو قوي ريښو د موجوديت

مرهونه ده. بله چله د خلکو
بيار ښېوونه اهميت ور ډېر کړي
خودا سي ريښې چې له نمي او
مېوې يا ټانو څخه لڅې وي هم

چندانې به کار نه راځي. نو
آيا پداسي حال کې څرك اصلي
معيار او اندازه پيدا کولای
شي او پاو بلای سي چې ددې کوم

ځاي کلتور او کوم ځاي ئې
کلتور نه دی؟
آيا د کلتور معنی د يو سړي
داخلي وده ده؟ البته، هو. آيا

کلتور د نورو سره د طرز ګذاري
معنی لري؟ حتماً، دغسي ده.
آيا د نورو د پېژندني وظرفيت
ته کلتور و يل کېږي؟ زه ګمان

کوم، چې همداسي ده. آيا و
نورو ته ستاسي د ځان ښوونې

او تبارز ظرفيت به د کلتور
مفهوم ولري؟ زما په خيال دغسي

ده. کلتور داتـوله معناوي
اري. هغه څرك چې د نورو د

نظرونکی اثر موندلای به هره اندازه که جامع هم وی، دیوه پراخ او جامع ذهنیت او کلتور څخه بې برخې دی، ځکه یو سړی به یوازې سر دیوره علم او تعقل و معراج ته نسی رسیدلای پدې ځای کې ځینې خارق العاده انسانان مستثنی دی. نوری دا هم ځانته د تفکر، تعقل او د حقایقو جلا جلا رنگ اری او که موږ د هغو په مخکې د خپلو مغزو دروازې خلاصې نه پرېږدو نو نه یوازې ځان د هغو له متاعو او ښېگڼو څخه گوښه کړو بلکه د خپلو دماغو دپاره یو داسې وضعیت رانیسو کوم چې زما په عقیده د یو کلتور غوښتونکی سړی و طبیعت ته بیخې نه دی ورته، ځکه یو کلتور غوښتونکی ذهنیت د خپلو کلتوري ریښو دار لو سره سره د نورو کلتورو د منلو او جذبولو دپاره د خپل دماغ دروازې او کړکیانې پرانیستې پرېږدي.

یو ذهنیت باید د نورو د مد نظر نه کوډلوستلي دپاره نه کړه وي که څه هم د هغه سره هر وخت توافق او ښه زړه ونه اري ځکه د توافق او نه توافق پوښتنه هغه وخت ومینځ ته راځي چې یو شی ښه و پیژندل شي. برخلاف که یو سړی به پټو سترگو د داسې حقایقو څخه ډډه کوی نو دده دا عمل و یوه سوال ته کلتوري رسیدنه او تجربه نه بلله کېږی.

زه به یوه بله کلمه هم استعماله کړم.. دا کلمه سابقه (علم) نومیږی. د ژوند و معضلې ته علمی رسیدنه څه شی ده؟ جواب ئې دادی: د هر شی امتحان کول او تدقیق، د پوښتنې او سوي په کومك د حقیقت څارل او پیدا کول، لیدل او تجربه کول هیڅ وخت نه و بل چی داشی باید داسی وی بلکه د یو شی موندل هغسی لکه چی دی، که څوك پر یو شي اعتقاد واري د هغه شي منل او که به همدغه کړی کی یو بل استدلال چی باید یو مغز د هر شي د منلو دپاره خلاصه پرېږدي نه وي ولاړ مینځ ته راغی د فکر او اندیښنې زړه نه اوول او د هر تندباد سره ښځا نه کول باوجود د دې چې یو اوږد

ذهنیت باید د هر نوي فکر د کښولو دپاره، چې نوی پیدا شوی وی، چمتو وی. نو آیا کاچر هغه ؤ چې یاد مو کړ؟

اوه... څومره د ننني متمدنې نړۍ او نوی د نیا څخه لیرې پاته شویدی. که یو څه لا لیرې واقع شوې وای نو بیا به د اوسنیو ملی او بین المللی کړکیچنو حل او فصل زښته گران اسېدلای.

په نړۍ کې هر مملکت دا چرت وهی چې زموږ د غړکی خوند تر نورو ښه دی او یا خدای [ج] تر نورو موږ ته ښې متاع گانې را بخښلی دی، زموږ خلك تر نورو ممتاز او زموږ قوم تر نورو اصل دی. نور انسانان به ښائی یا ښه وی یا بد.

اما زموږ په درجه کی پاته دی د حیرانتیا ور ځای خو لا دادی چې بیله کومې استثنی څخه ټول انسانان او خپل مغزونه دې

تشو افکارو او خیالاتو نه خالي
کړېدي .
شرقي ملتونه خو بالکل پخپلو
خیالاتو او عقیدو کې نښتي دي

کله بیا دژوندانه په مختلفو چارو
کې تر نورو مخاتقه‌لو او ته هم
ایښدي او مخاتقه په امتیاز هم
قائلیږي . په هر صورت د نړۍ

دوه یادرسوو کلو په موده کې
د دوی برسره هم ښه سخت واړي
وسوه ، ریښتیني بري ، تنې ئې
داغي او د استثمار په سکرونو

وویشتل شوه . نو بیا ددې فکر
سره سره چې دوی تر نورو
ملتونو ممتاز او پورته دي دهغه
تریخ حقیقت و منلو ته هم اړ سوه

چې کوا کې نور خلک هم دوی
ترتلای او استثمار کولای شي .
که لږ څه دقیق سو نو ددوی بر
مقابلو بانډي دعه‌وارو او نړیو

ددوی دحقیقت غوښتلو شعور
راویاراوه .

دمخه هلته د حقیقت څخه د
تښتیدلو یو کوچنی تمایل بروت ؤ

هو ! یو غمجن تمایل ؤ .
دوی په ویل : ښاغلي چې موږ به په

ظاهري او مـادي شیانو کې
کښېته پاته‌یو ، اما په ضروري
شیانو ، اخلاقي ارزښتو او معنوي
کیفو تر نورو ښه آراسته یو .

زه بدې کې هیڅ شك نه لرم چې
معنوي شیان او اخلاقي ارزښتونه
په آخري درجه تر نورو شیانو
ښه دي اما دا مخای مې حیرانوي

چې مخینې فقط بدې ساده استدلال
چې معنوي پرسته‌لو ر شعورونه او
فزیکي او مادي شعورونه پست
او حقیر دي دمخان دپاره دنښتې

او بانی‌لار جوړ وي . داسې
لارې باید چې بندې شي ، بردې
لار تلل د حقیقي خـرابۍ د
عواملو پیدا کول کرانوي .

نشنلېزم یوه خورا فوق العاده
پېښه‌ده ، دا پدیده که څه هم د
ملتونو و تاریخ ته دژوند او به
ور کوي ، وده ور بخښي ، قوت

ور ده‌روی او بالاخره اتفاق او
اتحادورته راولي . اما په عین

حال کې دهغوی محدودو او
ترتلو دپاره هم یو میلان ښکاره

کوي . محکه هر یو دخپل ملت
په برتری او تفوق غوښتلو کې

دومری مبالغې نه ورسیږي چې
آخرنې نو د نورو ملتو سره هیڅ
متناسب او د برتله کېدلو وړ
نه بولي .

صحنه اوری ؛ او هر یو دخپلی
مبارزې او غلبې او د بل دنباه
کولو او د نکرولو په چرتو کې
دوبیږي تر څو چې په نتیجه

کې هم دغه نشنلېزم چې دخلکو
د ودې او رشد سمبول دی د
ذهنیتو دنیاره کولو او راکد
پاتېدلو مظهر گرزي . کله چې

بیا هم دغه نشنلېزم یوه بریالۍ
بڼه کښلی وي د زور په چلولو
پر نورو بانډې دغو پدلو لار په
مخه ور کړي او دیوه بین المللي

خطر په شان غور محکې پورته
کړي .
نو بالاخره ناسې چې دخیلانو
هر تار تاو کړي دې نتیجې ته

رسیږي چې باید ددې شیانو په
منځ کې یوه پوره اندازه او

انډکل پیدا کړه شي که نه نو
هر هغه شی چې ناسې ئې خیر

بولي پر شر راوړي .
دغه کلتور چې حتماً یو مفید او

چامع مفهوم دی، که د یوه مضر نقطه نظر څخه و کتل شی یا پر بده لار استعمال شی نه یوازی یې وحشیتیك او راکد بلکه د تجاوز او نورو محاله کرزی او د جنګ او نفرت سبب کیږی. زه نه پوهیږم چی اوس به نو څرنګه تاسی یو پوره انکل پیدا کړی. د اقتصادی او سیاسی موضوعاتو او کړکیچنو څخه ماسوا بنائی چی همدغه شی زمونږ ورځنی معضله تشکیله کړی. ځکه هم د ننورځی د انسان په روح کی د جنګ دپاره یو خارق العاده تمایل پروت دی او هم د انسان روح په هغه نتیجو پسی تلولی تلوای تلاش کوی چی اصلاً نه پیدا کیږی دوی و اقتصادی موضوعاتو ته نژدې کیږی او دغه اقتصادی پرابلمونه پېله شکه د یو اهمیت هم لری ځکه دا به خورا شوده کی وی چی یو سړی هغه وخت چی انسان دلسوزی څخه مړی د کلتور او حتی د مافوق الطبیعه قدرت په باره کی بحث را واخلی

د مغزه نردې چی سړی د یوی موضوع په باره کی ږغیږی لومړی باید د بشر د پاره د عادی ژوند اولیه ضروری او اساسی مواد راغونډ کړی، چی د لته نو پخپله اقتصاد راکډیږی. ځکه د ننورځی انسان په یو داسی وضع کی نه دی چی ددې نو او ستونزو، لوږو او بې عدالتیو په مخ کی خونسرده پاتـه سی. په داسی حال کی چی ښه نې وینی نو له مملکتونه په مساوی ډول دا بار پراوزو نه اخلی. بار یو پوره نه کوی او کېږه بل وړی. نو خامخا باید داسی موضوع نو سره د اقتصادی یا بلی لاری له خوا تماس او اړیکی پیدا کړسی. مګر زه فکر کوم چی د اقتصادی پرابلمو تر شا د انسانانو په دماغ کی یو عجیب و غریب روحی سوال یا موضوع ځای لری. له دې کبله دی چی ځینی انسانان په دې باره کی په بیداری سره تعمق او دقت کوی که څه هم بله د له بیا له پوهنی او مسامحی څخه کار اخلی. په هر صورت

د انسان په روح کی جنګ سته خو زه نه پوهیږم چی ددې موضوع متعلق به څه تصمیم او نیت ونرل شی. یو بله اندېښنه چی زما خاطر را ګروی هغه داده: کوم خلک چی د پر د پر سره بېړنی زیات زیات په غاړه کی سره لوېږی او جنګونه کوی. ددې سره سره تاسی نشی و یلای چی موږ باید یو بل ښه سره و نه پېژنو ځکه دا عمل د ځان محدود ول او مختنق کول دی، همدارنګه د ننني ورځی متمدنه دنیا په رښتیا د داسی اعمالو ویـار نه نشی کولای. نو لدې کبله دا اړ تیا حسیږی چی انسانان باید یو بل د پېژندګلوی د پاره د ثواب او صحت لاره پې کړی خو... درسته او صحیحه لاره حتمی ده صحیحه رسېدنـه او دوستانه رسېدنه حتمی ده. ځکه یوه دوستانه پېژندګلوی او نژدېکت یو دوستانه مسئولیت او تکلیف منځ ته راوړی. زه د انسانانو په ژوند کی پر دې قانون باندې

د ټولنې سره به ښه اچولای چې هغه
دادی: هر څومره چې اثر د حرکت
نېك او مبارك وي هغومره
مسئوليت او تكليف خپراروونكی
او بر بركته وي او هم عكس
د هغه .

نو كه موږ وغواړو انسانانو ورونو
يا نورو مملكتونو ته په پوره معقوله
او دوستانه لار ژوره ور انژدې كړو
مگر پداسې حال كې چې زموږ
د نبوغ او حقيقت ارزښت-
اروونكې ښاركونه مختنق نه
شي، او د خپلو زړو او ذهنيتو
ورونه د تولو هغو كتوررو
حقايقو د پاره چې د دوی به
برخه كېږي خلاصې پرېږدو
نو دا به نه يوازې د پوره تفاهم
او پېژندنې د پاره بلكه د ښې
پېژندنې او حسن تفاهم د پاره
هره زمينه وتراشي .

اوس هو نو خپل سرته پرېږدم
څو معلومه كړي چې كلتور
څه او عقل څه دی ؟
موږ د زده كړې به چمن كې

« د پوهانو په نظر »

## زمانه او وخت

څرنګه چې د عصر او زماني په
مینځ کې ژوند کوو، او مجبور
یو چې د زماني سره سم وړاندې
ولاړ شو، که نه نو زمانه به
موږ وړاندې تېله کړي.
هغه څوك چې پخپله خوښه سره
د زماني سره مخ ته ولاړ شي
خوشبخته دی . [هردر]

* * * *

موږ ټول د زماني زامن
یو . [شه فر]

ښه کېږي، د پوهنې په کرد
کې غوړېږي، د ازمايښت
(تجربې) په کښت کې زرغو-
نېږي او د زده کړې، پوهنې
او ازمايښت په اوبو گدامو
کې دومره ور كېږو چې آخر
د خپلې پوهې اندازه راڅخه
ور كه شي او د اندازه اخستلو
څخه ئې عاجزه شو. موږ بايد
پوهنه کې دومره پټ او ارل
كېږو چې په آخر كې نوسري
نه يو ډول بل ډول ادراكونه
او افكار پيداشي او داني چې
دغه تولو له پوهنه كه سره يو ځای
شي بيا هم د بشري نسل د عقل
په پوخوالي او د ذكاء په
ارتقاء لو كې اساسي مرسته
اشي كولای .

زما سره دا احساس شته چې هغه
بخواني خلك چې زموږ د
اوسنۍ دنيا د نوي تمدن او
نوبو علومو او فنونو څخه
ناخبره وه بناً چې د ژوندانه
په اساسي برخو كې زموږ تر
ډېرو كسانو عقلمند تېر شوي
وي . زه نه پوهېږم چې آيا
وروسته به موږ د بشري نسل
دا تو له پوهنه، سياسي وده
او ارتقا په پوره پوره او حقيقي
هوښياري سره پسرله كړه او
تركيب كړو كه يا ؟ زه خو
نه پوهېږم ځكه انساني نسل
د مختلف الجهته قوو تر منځ
ځړېږي .

[ زموږ ژبه ]

ښاغلی عبدالحی «حبيبی»

# د پښتو ادب يوه ښکلې ټوټه

## کله چې يو توريــالی جنرال

## شعر وائی

د پښتنو په تاريخ کې د دوولسمې هجري پېړی اومړی برخه د يوه ملی قيام او رستخيز دوره ده په دغه وخت کې د پښتنو نامی پهلوان او لوی شاعر خوشحال خان مړ شو، او دده له افغانانو مړ که سره دليري پښتو نخوا د ننګيالیو پښتنو ملی جهاد د مغولو د ظالم او پردی حکومت سره هم ختم شو.

مګر پښتنه ابې شنډه نه وه په هم دغه زمانه کې له پرو پښتنو څخه يو بل مېړه د هوتکو په درنه کورنۍ کې پيدا شو، چې

کــندهار بابا و حاجی مير خان بابا، او دا هغه درونه او آزاد خواه او مــدبر سپين ږيری دی، چې اصلی نوم يې ميرويس

خان و.

ميرويس خان د کــندهار په سيمو کې هغه مشال بــل کې کړم چې شل کــاله مخــکې

خوشحالخان د لنډي او اباسين پر غاړه رون کړی و، هغه رڼا چې لږ وخت دمخه دا کوډې او خټکو او يوسفزو پر سمه او غر

وځليدله، اوس د ارغنداو پر غاړو پر کندهار وځليده، او د ميرويس په رهنمائی اوند پېر د کندهار په تاريخی ښار کې د

آزادی ګلګون بيرغ ونه وربېــدل!

د ميرويس خــان د آزادی د جنګو او د هوتکو د کورنۍ

يو توريالی جنرال سيدال خان ناصر و، چې له کــندهاره تر هراته او اسپهانه دده د همت او فتوحاتو او توری د ځلاميدان و.

د پښتنو دا لوی جنرال او فاتح سپه سالار چې د هوتکو د دوری ارت فتوحات دده په توره او مړانه شوېدی، د تېرې توری او دلاوری

مېړه نې دردمن زړه او ښه ستر ګې هم درلودی، د پوهې او علم خاوندو، او د پښتو خزانې د مؤلف په قول يې مروج علوم

لکه: فقه، تفسير، فصاحت، صرف و نحو او پارسی کتب او منطق وه؛ زما مطلب بــه دې ليك کې د سيدال خان لښکری نبوغ او

جنګی ماثر نه دی، خو دونی بايد ضرور ووايم چې دغه نامتو او مېړه جنرال په هرات او کندهار کې د وطن د دفاع او

د پښتنو د عظمت لپاره ترډېره وجنګېدی، څو په پــای کې د کلات په جنګ کې د نادر افشار په لاس ورغی، او د هغه په حــکم

پوند کړ شو او يانه عمر ئې د کابل په شکر دره کې تېر کړی، او هم ددغه ځای د سياه سنګ په هديره کې ښخ دی.

وائي چې د کوم انسان په فطرت کې د نبوغ او عبقريت استعداد وي، نو که دغه دانلتوب لياقت په يوه رنګ کې ښکاره نشي، په بل رنګ او بله صبغه کې خو ضرور ښکاره کېږي.

شاعري اصلاً يو نفيس او جميل فن دی، چې د انسان له فطري او جمالي استعداده راز يږي، نو که يو سړی ددې هنر لپاره په خپله کې تومنه اري، خو دظهور او تجلي لپاره ئې مساعد چاپېر نه وموندی نو ښائي چې ددغه ورتيا او لياقت د څرګندېدلو لپاره کومه بله مساعده او سمه مجرا پيداشي، او هم له هغې خوا د نبوغ او انلتوب مظاهر څرګند شي.

زموږ نوريالی جنرال سيدال خان هم له دغو وتلو او نامتو انسانانو څخه وو، چې د شعر د نفيس صنعت سره ئې عسکري انلتوب او نبوغ هم درلود، مګر لکه ددې زمانې له يوه بريالي جنراله چې چا پوښتنه وکړه: ستا شعر خوښ دی؟ هغه وويل: هو! که زه جنرال نه وای، نو به لوی شاعر وای.

اما سيدال هم لوی جنرال ؤ هم ښه شاعر ؤ، د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک وائي: سيدال خان ناصر په هغه وخت کې چې په جنګو ګرفتار نه ؤ: نو به ئې اشعار ويل، او د عشق سندرې به ئې کښلې، خو اوس په اسپهان کې په مهمانو بوخت دی، او د شعر ويلو فرصت نې نشته او ورځ ئې په هسې جنګو تېرېږي چې رستم هم ځنې دار کا.

د سيدال له عسکري نبوغ او لياقته سره دغه ادبي ذوق او نفيسه قريحه ډېره ښه ايسي، دده د شعر ډېرې نمونې موږ اوس نه لرو، خو د پټې خزانې د مولف په همت دده يوه ملي بدله کوتوه راغلې ده، دا بدله د يوه ملي او خاص پښتو وزم او شعري رنګ نمايندګي کوي او هغو سپرو بدلو يوه ښکلې نمونه ده چې تر اوسه ئې هم بدلچيان، د کندهار په باغو او د سيوري او انغر په سيمو کې په ټولنه او ښکلو خو نه وررو ږغو وائي او زموږ د ملي بدلو او کسرونو يو خاص ډول دی.

د ميني دنيا بېل بېل رنګونه او ډول ډول مظاهر اري، کوم وخت چې سړی په دغه کوڅه کې قدم ږدي، بيا ئې هغه دمه چې ددې لارې په ګنډوږو بيچومو روزدېږي، د هر مراحل په طې کوي، څو چې پای ته په هر څه د خپل يار په رنګ کې وينې او ئې يواځې په ده مشغول وي مولوي بلخي دغه حال داسې څرګند دی:-

دوست نشسته در نظر، من بکجا نظر کنم

دوست ګرفته شهر دل، من بکجا سفر برم؟

سيدال خان دغه مقام نه د بدلې پدې کسر کې په فصاحت او خوږتوب ښه اشاره کوي:-

يار ما له هسې ګران سو

را تېر تر ټول جهان سو

اور نه و يښم په ستر ګو جهان ټول را ته جانان سو

ظاهراً له بوه عسکری سړی څخه د صوفیانو د تحقیقی مقام داسی بیان عجیب ښکاری مګر د فطرت د جمالی تشعشع تجلیات خو پر کائناتو عام دی، او ښائی چی یو سپاهی هم دغه میل په

هغه سترګو وګرای شی لکه مدقق صوفی چی ئې د اشراق په برکت کوی .

د سیدال د بدلی او سړی بند داسی شروع کېږی :-

دوې زلفې دی اوږدې کړې
پر مخ دی را خپرې کړې
سرې اشرېی دی پهندی باندی سپرې کړې
ګرزې په باغ کی په ګلونو کی نخرې کړې

په اور دی وسوم یاره
رانه اور تازه بوستان شو

پدې بند کی ښاغلی اوستونکی ته د یوې ښځینې معشوقې کره وره او د جمال مظاهر ښه ښکاری

او دلته د یوه ښځتانه توریالی او بریالی جنرال عاشقانه څېره څرګندېږی، او دده شعر هغه رنګ لري چی باید د ښځتنی محیط او ښځتنی تخیل نمایندګی وکړی، او هسی و زغیږی لکه

یو ښځتون چی زغیږی .

په دوهم او دریم بند کی د عاشق حال او زړه خوږ په هغه ډول تصویر کوی کوم چی د شرقی ادب د تخیل او محاکات مشترک میراث دی. دلته د ورځو لیندۍ او د بانو غشی ضرور کار کوی او دا خو هغه د زاړه حربی سیستم اثرونه دی چی

په شرقی ادب کی عموماً د تعبیر لپاره له هغو څخه کار اخلی ځکه چی په هغو وختو کی لا اورنۍ وسلې نه وې عامې شوی، او د جنګ پر میدان به هر توریالی یا توره ځلوله، او یا به ئې غشی غښی

لیندۍ او زونه اچولی وې او به هغوی به ئې تېره غشی ویشتل نو شاعر به خپله معشوقه هم په هغو وسلو مسلحه ګڼله . او په هغه وخت کی د شاعر وظیفه همدغه وه چی د خپل محیط ترجمانی وکړی

اما اوس که هم د اتوم په زمانه کی ځوږ ګرانه معشوقه له هغی کږی لیندۍ او غشو څخه کار واخلی او د مین خراب زړه په هغو یخوانو وسلو وربټی کوی، نو ګرانه لوستونکیه ته پخپله فکر

کړه، چی د پر قدامت پرستی او ارتجاع نه ده؟ سیدال وائی :-

مین چی آشنائی کا شپه و ورځ به ګریانی کا
شهی د دستمګاره خوشال زړونه په زخمی کا

لیندۍ اری د ورځیو، د بانو غشی کاری کا
پر هار می ګوره خلقه !

د دلبر د تیر نښان شو
مین به او یو غرو ځی

سرتور به نیمو شپو ځی
ووزی له وطنه، وطن پرېږدی پرچوا و ځی

فرېادو ناري وکا، په نارو په غلبلو ځی
وصال ئې نصیب نه شو
ګوره زړه د ک په ارمان شو
پخوا خو به مین د عشق په درد او سوز کی اېونه

غوندی پر بوټو ګرزېدی او مخه به ئې پر دښته او سارا نیولی وو او خاوری به ئې هم پر سر بادولې مګر دا د جنون لوړ مقام او سنی بدبخت مین ته حاصل نه دی . ځکه چې اوس ښارو نه نژدې

بوټی او سارا نشو پاته ، تـول ښکلی او لوړی ماڼی سوی وداڼی او لاری هم ټولی په سمیټو ګلکی سوې ، چې بیچاره مین یو موټ خاوره نشی پیدا کولای ، چې پر سرئې وپاشی ، او که هم څوك

داسی لیونی غوندی پر بوټو ګرزی او خاوری پر سر بادوی ، نوئې پولیس ژر دارالمجانین ته بیائی ، چې ښاغلی د کتور ئې د لیونتیا په علاج وکی . نو بیدې او سنی دنیا کی به څوك زموږ

قدامت پسند اود بخوانو افکارو خاوند مین د ښار په کوڅو کی ابله کړی ، چې د ماښامه تر سهاره په خیلو نارو غلبلو نور خلک له خوبه وباسی او آرام ئې ور وران کی ؟

سیدال خان وائی :-

ناري وهم عـالمه ! دشپې تر صبحدمه
نا توانه د بیلتون یم یو ګړی نه ارام دمه
بیتامی نفس خیژی راځه زما دزړه همدمه

نظر په مـا غریب کړه
چې نا خون می ستا په ځان شو

مین بخپله ذهنی دنیا کی کله کله تشبیهات پیدا کوی ، او غواړی چې د خپل زړه کړاو او د عشق درد وسوې د تشبیه په وسیله خلکو ته وښیی ځکه چې دا بېدرده عالم خو دده د مین تا به

ګراوته په دغو مادی ستر ګو نه وینی ، نو ځکه دی له استعاري او د تشبیه او نورو ادبی حیلو څخه کار اخلی .
سیدال وائی :-

شبنم په ګلو ښکاری
زما اوښکی داری داری

خو ناب ځی ستا له غمه زما په مخکی لاری لاری
تمامه شپه کم نیره په ژړا په ناري ناري

ښکاره شوه چې مجنون یم
لیونتوب می اوس عیان شو

بوستان ښکلی ښایسته دیء
رنګین په او ښکو زما دیء

د زړه پرهار ګلګون دی چې بلبل په تماشا دیء
په سینه می زړه و چاودی ته وایې په خندا دیء

نتلی د بېـلتون یـم
زه سیدال دامی بیان شو

د سیدال د شعر او شاعری خوا دده له حربی نبوغه او کمالاتو سره البته نه قیاسیږی مګر دا خو ضرور ښکاره کوی ، چې سیدال تنها جګړن سپاهی نه وه ، بلکه عالم ؤ ، شاعر ؤ د آرټ ذوق ئې

لاره ، او دده پیدې بدله کی د ادبی لیاقته سره سره د موسیقیت طنان او خوږوالی روح هم

ښکاکوی او دا بـدله په داسی خوازه ږغ او ترنم ویله کېدای سی ، چې زموږ د ملی ږغونو او آهنګونو یوه خونده وره نمونه ګڼله شی .

[اوږده ۱۵ مخ په بای کی]

## زموږ لیکوال او شاعران

بناغلی عبدالرازق «پالوال»

## (مات لوښی)

صراحی او کټوری چې پر میدان وی
د ساقی سترګی درته ځان ته نګران وی

هم بدلی هم اېشلی وی هم سروز وی
څه مستی وی څه هوس څخته یاران وی

زړه وزړه ته ور نژدې وی خوله وخولې ته
دوی ښادی چې یو پر بل باندی مهمان وی

کله شپې تر سحر پواله یې سررا وپوست
د سپوږمی مخ به په دې همت روښان وی

له سرو شوندو یې خوا تو لهسی خاتوله
په قدم یې ویرانه وطن ودان وی

را رسېږی ساقی غم تر غاړی نیسم
پر ژوندون باندی می سر اېښی تاوان وی

---

### د پښتو ادب یوه ښکلی....

د ١٤ مخ پاته

او د سیدال په جنګی کړ کټو کی موږ د آرټ او نفاست تجلیات هم د شعر او موسیقی په رنګ کی مومو، او دا زموږ د پریـنالی جنرال د شخصیت یو بل ښکلی او د ستایلو ور اړخ دی، چی د پښتنو محیطی نور جنګی نـوابغ لکه، خوشحال خان او احمدشاه بابا او شاه حسین هوتـك او پیر روښان یې هـم څه نـه څه لـری.

د حیات اربه هساله وراه ښایېږي
هغه آن چې ځان ئې جانه، جان ئې ځان وي
جنګ او صلح سره خاندي خواله کاندي
چې به شرنګ د پیمانو سره پیمان وي

څو چېښې ئې کټوری په رپړ د پدو وي
زړه ئې له صراحي سره ګردان وي
چې میوال د میو پورته کې پیکونه
په انګ د لپونټوب دا میدان وي

همېشه ئې جنګېدلی وي لسه لاسه
بیو زړ بله مُداماً سره قربان وي
هیڅ جرګه د دوی د جنګ مصلحه نه سوه
که حاضر ئې قضاوت له رمضان وي

لا پخپله هم د صلحې قرباني وي
که نه جنګ به بر هر ګنج باندي پښېمان وي
نور بې هوښه دوی له ځانه وي بې ځانه
چې نوکري ئې په خونه کې پاشان وي

الکهٔ کرور اوښې د کلال د انړو ختو
په ورانی سره دبوه ئې بل ودان وي

څو ښېری به ئې پرسر وي تېري سوي
اد ولې به اوز شکله ور دوران وي
په سل ژبو؛ زر نومو به نومېدلی
اشغال کړي بې په وخت کې یو مکان وي

بیا سبا ئې سره بیا وي د ننګهاري
وایي داچې عاقبت به مو څه شان وي
آزانګه ئې له تماسه څخه سی پورته
چې لغښتلي پکښې هسې رنګ داستان وي

موږ او دوی بخیله څوک دچا څه کېږو
دجهان پوه او ناپوه بههم حیران وی
هم په غم هم په ښادی کی سره مات یو
په بې خوندو ژوندانه کی موامان وی

په بند کیږو موکړی پټ د مخ ښپونه
را وهلی ئې پر مات زړګی پتربان وی
تودوی ئې کور کالی زموږ نو کر کی
هم کودی وی هم کودری هم ګیچان وی

نن جوړیږو، سبامات بیرته یو خاوری
را سره به دا ګردش تر کم زمان وی
خواری ختی سو هر څوک راپسکښې خیژی
د بې غازونه ختلی متاران وی

په وهلو، ټکولو مو تسمه کی
د مزدور خولی پرموږ باندی باران وی
هرچی غاز نه اری دغسی به ژوبلی
له ترټلو به مخ شین لکه آسمان وی

غم له غمه څخه زېږی ښه له ښو څخه
مخ دی پرته سی دژوند چی مرګ پایان وی
نه خوږیږو، نه پوهیږو، چی څه کیږو
بې حسی مو د دردمند وجود درمان وی.

د کلال پرڅرخ سپارهدا چی غازدار سی
نو به کاږیء تر بې غازو سرګردان وی

هره ورځ ئې یو هنر له پله زېږی
د پرون تر نیم کلاو، کلالان وی
هغه خاوری، ها او به یو، هغه ختی
بل موجود راڅخه جوړ کی بل سامان وی

لا دا مړ پهٔ تاو هو نهٔ پرېږدی چې وچ شو
د اوښو د بڅېدو شړطونهٔ ګران وی

نور دودونهٔ ئې تر سر خیژی خاموشه
داښ له خپلی بدی ورځې د پر ستومان وی

څهٔ لمبې راباندی څرخې څهٔ بېده يو
نهٔ څهٔ شورو، نهٔ څهٔ وايو، څهٔ مو توان وی

څهٔ لرمون دیء پکښې څرنګهٔ پښېږو
هرغافل وجود له ورو ودی ودان وی

راشوه چې شو بازار ته خپله غوارو
چې د غوړ بخلی بهٔ چېری تود دېګدان وی

پهٔ خپل منځ کې تول راغلی سی بدرودهٔ
بو د بل پهٔ رېږ مرېږ پسې روان وی

بوله بوهٔ څخهٔ خوارهٔ وری پهٔ ځان کې توی کی
بل پهٔ منځی ځای نیولی پر ستړخان وی

کهٔ ئې خپل دستړخان صدرؤ خو و هوا
ګوره څو بې کښېنولي پر بڼان وی

پهٔ چوبر پهٔ ئې څوك ستړی وی پهٔ ځفاسته
څخهٔ ؟ مینځی بهٔ ولاړی کهٔ مربان وی

پهٔ هنده بهٔ ئې زموږ د زړهٔ له وینو
کلهٔ، چاتر سره کړی خپل ارمان وی

چې د ځان سلامتی پر جهان غواړی
د هغو لهٔ پاره رنګ زموږ کاروان وی

کهٔ هر څو ئې ساقی نینګ ترغاړی نیسی
ترتنګ ستونی بیا تونګ کړی دا بیان وی

د «پالوال» قلم وای ژبهٔ د ګونګیانو
چې ابز کښلی بری احوال د بې زبان وی

## که به نه وایم لا هم

که دې ستر ګې چیرې روڼې پر شها سې
بیا نظر سې بې وزره په هوا سې

پر اسمان سې د غرور ربة النوع
ناز، نخرې، ګنج، کرشمې، نزاکتونه
که پښتګې نې پر تندې ورتګونې هم
له اړنیا به سر له غربه در ښکاره کې

د ګدای غاړې تنه واچوې لاسونه
ستر ګې خوله په خندې دروسې آیسته دورې
که به داسې امتحان وربانده کیږې
«پالوال» شیوابې که نه وایې لا هم

د غوڼې غوندې نې بوه خولګې خندا سې
د نګه بڼګه خرامـــانه بې پروا سې
مخ به نه درواړوې چې د موږ «۱» شا سې
چیه څه چې بو کچکول به در له راسې

سر تور سر به وچو شونډو هغه داسې
اکه د که پیالــه تو به شاؤخوا سې
ښا بسته دې بـــو مخیزه بې نوا سې
چې د ښکلو دې بوبل صفت اړنیا سې

## پــــرسده

به زړه خمر رغړوم چې ګوندې پاك سې پرسده
خاورې خیرې نې پر بولې د هر چاك سې پرسده

تك تور توغې نې د غم ورځنې بوسې
کم ګنجونه چې ارې تو له رنجونه

چې هر چیرې به وت وت ژاړې له غوره
پرونې غمجن یادونه ځنې هر سې

د هوښیارو پر ژوندو خاندې بې هوښه
د مدهوش څیرې لمن به ورته نیسم

داچې کب غوندې بې ښکلو تیریږې
ښابې اور د مغنې په میخانه کې

څو دا باغ به دې لا له پر ګتناك سې پرسده !
پکښې غرونه به بوهنده هلاك » » »

دا بې وا که زړه مې لېز ترلېز به واك » » »
د عالم له قید او بنده څخه بې باك » » »

څو د عقل منطقې ګور نې ناړاك » » »
پکښې تو بې ګوندې څه او ښکې د ناك » » »

د مستې به موج نې غرق دغه نیاك » » »
له پالواله سره روزده به چینباك » » »

---

«۱» سپږمه

تاریخي :

دبناغلي «هاروني» ترجمه

# وایشیا ته د اسکندر راتګ او د لته دده فتوحـــات د یوي ښځي په تحریک ؤ

واشي د نړۍ د نامتو فاتحانو له ډلې څخه داوی اسکندر وبابې نه څوك نه دی رسېدلی څکه چی دده
دحکومت قلمرو د برتانیې له جزائرو څخه بیا دسیلون تر جزیرې پورې ؤ، داروپا او اېشیا د برو بر څو
اشغال دده په وخت کې دده دهغو قواؤ په توسط وسو کومې چی نې پلار «فلیپ دمقدونیې پاچا» ورته
برابرې کړی وې

تر ورځ پېله د اسکندر په اه
تار څخه پل دده له انارو څخه
څوك نه وینې خو دده فتوحات
په تاریخ کې بېخي ښکاره دي

او د تاریخ لیکونکی نسی
کولای چی ستر کی پرېږدی کی.
اسکندر بداسی حال کی چی
یو خود خواه سړی ؤ بیا هم دو نه

محبوب ؤ چی یو نا نیا نو به فوق-
العاده دده لمانځنه کول .

داچی د نړۍ د نیولو فکر ور
ولاړ سو دوه علته وه یو د

[ر کسانه] سره دده واده کول
او بل دا چی د یوه خوزاوصمیمی

ملګری [کلتیوس] وژل چی
دده په لاس ووژل سو واقعه

ده ددې سړی د مرګ پېښه
داسې وه :

چی یوه شپه اسکندر دمستی
په حال کی ځان خدای وباله

[کلیتوس] ور ته وویل: چی نه
ځنګه خدای نې که یه پلاری
جنګ کی زه نه وای درسره
نه به دو ختمه مړ وای او یه هغه

ځای کی ما دمرګ له خلاص کړي
داخبره پسر اسکندر ګرانه

تمامه سوه . او ده ته نې وویل:
چی نه باید اوس د ستی زما ښې

رامچ کړې. کلیتوس داخبره
ونه منل نو اسکندر ور ته په

غضب کی سو او په هغه نیزه چی
په لاس کی نې وه پر ده حمله

وکړه او ځای پر ځای نې وواژه.
له دې وروسته نې وغوښتل چی
پدغه نیزه خپل ځان هم ووژنی
خو دانبکرو مشرانو او سردا-

رانو نې د لاسه نیزه واخیستله .
کله چی پر هوښ راغی و پوهېدی
چی خورا بد کار نې کړېدی
مګر کار تر کار تېر سوی ؤ

دې واقعې خپل ځای او وطن
ورته اور کړی وو .

دوهمه موضوع د [ر کسانه]
سره دده دواده موضوع ده دا

یوه ښکلی نجلۍ وه چی د
اوسنی ترکیې له او سېدو نکو

او د اسکندر د دربار او بنادي
وه . کله چی د اسکندر ستر ګی

پردې ومونږ ته لاخپل دخوب واطاق ته ئې ور وغوښتله خو نجلۍ حال ورکی چې څو مې په نکاح نکړې زه به دخوب وځای ته در نه شم.
اسکندر د دا سې جرئت څخه خوښ سو او نکاح

ئې بزوتړل کله چې نجلۍ دده په نکاح سوه او هر وخت به ئې د ایشیا د زړغونو مځکو او شنو باغو نکلونه ورته کول څو ئې اسکندر ودې ته راواړاوه چې ودې خوا ته لښکر کښې وکړي.

۳۲۷ ق م کال ؤ چې اسکندر دخیبر له درې څخه تېر سو پوسل شل زره پلي لښکریان، پنځلس زره

سپاره، بوځه هم مهندسان، شاعران او لیکوال مریان او چوبریان ورسره وه چې د سیند دري

ته ور ننووت. پدې اوږده سفر کې دده منشي تواله لیکې او حالات د اسکندر دپاره لیکل اسکندر به پیاده چا بکو سواره لیاو په توسط دا حالات و خپلې مور ته چې [اولمپیا] نومېده او

په مقدونیه کې وه ور استول.
د سیند په دره کې اسکندر د یوه مشکل سره مخامخ سو هغه دا ؤ چې دوې خورا ډېر غنیمتونه په لاس راوړي وه او لښکریان ئې دغه په حمل

او نقل کې بیخې ډېر په زحمت سوه او دوی ئې د ښو واچول تو هغه ؤ چې اسکندر امر وکړ

چې دا مالونه دې وسوځل سي، پدې ترتیب دوی په ډېره چابکۍ تېر سوه او هغه ته ورشیوه سوه اسکندر خپل لښکر د رود پر غاړه څلور ځایه کې او په څلور ځایه ئې تر رود پوری ایستل

پدې وخت کې له هندي شاهزادګانو څخه د خپلو لښکریانو سره دده مخې ته راغلي ؤ دده په لښکر و پسوري سول کله چې د مځکنی هند و زرغونو ځنګلونه ورداخل سول اسکندر یوه سو

چې دا شاهزاده هسو په بو دام کښېباسي او د اسکندر لښکریانو هندي تولوا کیزوی دواړه ورو سته اسکندر بیله لاربښوونکی د پنجاب و ایالات ته ورننووت، د پنجاب سلطان چې [پوروس]

نومېدی پوزړه ور او غښتلی سړی ؤ ځینی مؤرخین ئې ونه دوه متره یاده وی اروائی: چې پوه غښتلی آس به خورا په زحمت د یوه ځای څخه بل ځای ته وړي ، او [پوروس] به تل پر فیل سپرېدی

اسکندر چې دده و ناحیې ته ورسېدی، پوروس د خپلو پنځه زرو سپرو جګړه ونو سره دده مقابلې ته راغلی ؤ دا ځای د [جلوم] او [چناب] رود-خانه وه اسکندر چې ولیدل چې د پنجاب سلطان

دده مقابلې ته فیلان هم راوستلي دي او ئې سیده پرغل نسوای کولای په زباته بیا دا اسکندر آسانو د دغو فیلانو او رڅه نورو ځناورانو څخه چې هندیانو د جګړې دپاره روزلي وه تور وخوړ

او اسکندر څو ورځې صبر وکړ ددې دپاره چې آسان ئې د فیلانو او نورو درنده ګانو د بوی او

لیدو سره عادت ونیسي پو فیل ئې هم وموند او د خپلو آسانو په مخ کې ئې ودراوه .
پوه شپه چې خورا تونده باران هم پیل وکی اسکندر و خپلو لښکریانو ته امر وکی چې د

جلوم ارزوود چې بیا یونانیانو [هیدا بس] و باله ورپورې وزی اود پنجاب پر لښکرو ئې د څو خواؤ څخه یرغل وکړ او دوی ئې مات کړل د هغې څوا فیلان هم چې خپل لښکریان ئې مات

وليدل نور وخوړ دفیلانو دې نور خوړلو هم د هندی لښکرو په ماتېدو کې اوې سهم درلود پوروس تر آخیری دقیقې پورې وجنګېدې کله

چې ئې وليدل چې په لښکرو ئې ماتې ګډه سوې

ده او په خپله هم زخمی سوې نو ئې دجګړې دوام بې ګټې وباله او دی هم مات سو . اسکندر سواریان پسې واچول او دی ئې وخپلی خیمې ته وروغوښت ، داسکندر ئې ښه او قدوقامت

خوښ سو او دده شجاعت ئې هم وستایه پسله هغه ئې ورته وویل : غوادې چې څه در سره وکم ؟ پوروس ورته وویل : لکه د پښوه باچاسره چې ښه‌ـ‌ـ‌ـ‌ـ‌ـ‌ـ‌ـ‌ایې .

اسکندر ورته وویل : چې بل څه غوادې ؟ پوروس ورته وویل چې بیاهم ددې خبرې جواب زما په لومړی جواب کې واضح دی .

نو اسکندر دپنجاب مځکې د یو څه نورو برخو سره ودده ته وروبخښل اودې دخپلو لښکرو سره دهندوختیځې خواته روان سو په هغه زمانه کې

دخلکو دا عقیده وه چې هند د نړۍ پای دی او پسله هغه دریابونه دی بیانو وچه مځکه نسته نو پدې جهت اسکندر غوښتل چې دا د نړۍ پای ووینې .

اسکندر دخپلو لښکریانو په غوښتنه چې بېرته دخپل هیوادو خواته راو ګرزېدل هندی خلګو

په ډېر خپلو ښارو دروازې نسه ورخلاصولې او خلګ بېرته ددوی د اطاعت څخه ګرزېدلی وه

خو اسکندر بیاهم دزور څخه کار واخیست او دوی په ئې دخپل ځان تابع کول او بیا په ځنی تېر بېدیء .

پدې لار کې اسکندر د [دارا] دلوه سره چې [استاتیرا] نومېده هم ازدواج وکړ کله چې د وطن د ګرزېدو په حال کې بابل ته

ورسېدیء یوه سخته تبه پسر راغله او دا ددنیا فاتح ئې د ځای کې چې پسه هغه ځای کې د

عمر پر ۳٤ کال مړشو اوامپراطوری ئې دسرداراتو په منځ کې سره ووېشل سوه .

---

[ ښځې خبرې ]

## ژونـــد

ژوند قماردی ، ماجراده ، انسان ئې باګټی بائې بایلی . ژوند یو معبر که ده چې تمام نلری . کله چې دیو تن آواز کرار کرار آرامیږی او ورکیږی بل ځوان او تردمخه قوی آواز پورته کیږی او ددې نکل مزې پسې تینګوی اوادامه ورکوی .

[ملهیس]

---

ژوند پخپله حقیقی معنی سره دېر سخت او مشکل دی او دهر خلګ پوازی د «وجود» په مرحله کې اوسیږی .



## «ویران»

# ښاغلی عبدالقادر «تبر»

یو سړی دی چې تل ئې سر ومخکې نه ځړولی په فکر کې ډوب او بر لاری کرار کرار ګامونه اخلی که یو پوښتنه یې وکړی ء دا متواضع او فکرجن سړی به ښاغلی عبدالقادر «تبر» وی او موږ ی د کندهار یو دردمند، خواخوږی آرام او خوش اخلاقه شاعر دی، دا صفات ئې پرته د اشعارو د ویلو په عادی مجلسو کې هم لیدلای سو، دا چې تخلص ئې تبر دی وجه ئې دا ده چې د تبر په غم غمجن او په درد دردمند دی .

ددوی په ادبی او شاعری ژوند کې تر هرڅه دمخه دا خبره ده چې تر اوسه ئې یعنی په دا ۲۳ کاله یوه داسې پارچه نه ده ویلې چې هغه دې د خط وخال متاثره او یادونه وی لکه ښاغلی «تبر» چې پخپله هم وائی :-

[ ما نه په ۱۳۱۸ش کال د شعر ویلو قوه را حاصله سوه چې له هغه وخته څخه ما د پر اشعار ویلی دی خو زما په شعر کې د خال وخط ذکر کوږ نسته ] .

او رښتیا چې ددوی د اشعارو رنګ تنقیدی ، اصلاحی تربیتی او اجتماعی وی . او پدې خبره ښخی ډېر خوشاله کیږي چې د جرائدو پرمخ د دوی په قلم مضامین واش نه ور ورا ندی کیږي لکه پخپله چې دی هم وائی [ د شعر ویلو څخه صرف زما مقصد دا دی چې د وطن ورونه می اصلاح او پوه وی ] .

نوموړی ښاغلی تبر د حاجی محمد نعیم زوی د حاجی رحیمداد لمسی په قومیت سنځر- خېل کاکړ دی دده نیکه حاجی رحیمداد د ژوب د کاکړانو څخه ؤ او د غزا په کال دخپلو شپږ ځوانانو زامنو سره د پرنګیانو سره د غزا په نیت کندهار ته راغلی دی او د پرنګیانو سره په جګړه کې پخپله دده نیکه ددرو ځوانانو زامنو سره شهیدان سویدی . زموږ دا شاعر ښاغلی تبر په ۱۲۸۶ش کال د کندهار په

اومري ناحيه کې زيږېدلى او لوى سوېدى .
په ۱۲۹۶ کال کله چې ئې عمر و اسو کالو ته رسېدلى ؤ دشالمار په مکتب ( اوسنى مشرقى ښوونځى ) کې ئې په تعليم او زده کړه پيل کړى

او تر ۱۳۰۳ کال پورې ئې دوام ور کړېدى خو کله چې ئې داوړو تعليماتو وخت رارسېدلى دى

دپلارمړګ فرصت نه دى ور کړى چې نور تعليم و کې او دا تعليمى دوره ئې پر پنځم ټولګى قطع

سوې او دژوندانه اړتياؤ دپوره کولو دپاره ئې وداسې کارونه لاس وراچولى دى چې دودېمه

اونور ضروريات په برابر کړى چې پدې لړ کې ښوونه (معلمى) هم شامله ده .
لکه ژموږ داليکونکى اوشاعر چې وائى [ په ۱۳۰۸ش کال کې د شالمار دمکتب په معلمى مقرر سوم اولاتراوسه ددولت مامور يم ] . د

معلمىء وروسته نوموړى څو ځايه ماموريتونه کړېدى چې اوسنى وظيفه ئې د کنډهارد کرهنى

په مديريت کې ده .
ددوى شعرونه او نوله آثار چې د يوه ديوان په

شکل ئې راټول کړېدى اودېرئې دطلوع افغان په ورځپانه کې چاپ سوېدى د وېلو وړ دي' د

نموني په توګه داڅو ټوټې در وړاندې کېږي:

## هغه دي

چې پر ټپوز لوئې زړه سوځى قربان هغه دي
وى دحلال حرام پرى فرق مسلمانان هغه دي

تل وى په زړو کې محبت د کام وطن ورسره
چې تر شخصى مفاد شوه تېر پهلوانان هغه دي

په نش وبل سره دخولې خو سرى نه شى مېړه
چې ځان ستومان کې په چوبړد کام ځوانان هغه دي

ځوانان هغه ؛ ځلميان هغه ' مېړنى بوله هغه
چې د وطن وپېجاد کارونه کړى ودان هغه دي

چې ئې ساتلى امنيت وى په هر کوټ کې دملك
ژموږ باشرف غيورعسكر منصبداران هغه دي

چې په هروخت کې کام بو زده کې ذهيوادپه خدمت
خانان هغه ' اوبان هغه ' د کام مشران هغه دي

چاچه سپارلي وه زامن خپل د مکتب ودرس ته
نن په تعلیم او تربیه تکړه ځلمیان هغه دي
څوک چې په شاړه مځکه کښت وکړي د خپل موټ په زور
اخلي حاصل د پر دا لبز نخمه بزګران هغه دي

د خپل چارو کې کاربګار د عمر ځان د باره
چې کام ئې وایست له احتیاجه تجاران هغه دي
دا د خپل کلي برده پران باندې چې نیسي چرګان
په بڼه باز او په خوبونو تپوسان هغه دي

کې د ښوزلو پر وس جوړه شوله ترخ ونوا
نو په رشتیاد ښاروالي زموږ وکیلان هغه دي
په شاعري ؤ شعر هرځای کتابونه ډک دي
کې په دردناك شعر تېروښې کړ شاعران هغه دي

---

## ﴾ اضافه تر خپل خورک په کورکې مه ساته غنم ﴿

نن د لارې د اخوت دغه مضمون در ته لیکم
اضافه تر خپل خورك په کور کې مه ساته غنم

ای ګران مسلمان وروره را کړه نن لاس د اخوت
په دین او په مذهب را شریك وروره د ملت
نن ښائی پر بې وزله طبقې ستا شفقت
ګرانی نه چې غنم ساتې هغه مدام غندم
اضافه تر خپل خورك په کور کې مه ساته غنم

مقصد که دي پیسه وي د ر خر څیبزی ستا پر خیال
د ساتلو ئې مسئول ئې وبه پېژه د وبال
قیمت به ئې تنزیل شی ځکه ښه دی دا سږ کال
پر خپلو ورونو نه ښائی کول ددې ستم
اضافه تر خپل خورك په کور کې مه ساته غنم

بللي خدای، رسول او حکومت بد احتکار
هم ګورو به نفرت و مرتکب نه دي کار
و شل ورو به نه ولاړ شي غنم من د کندهار
حساب درسره کيږي که نن نه کړي د ورور غم
اضافه نرخ خپل خورك به کور کی مه ساته غنم

غنم ساتي ګرانی نه پسته به او به پيمانه
مقصد دی وی ګرانی لیکن کوي یو بهانه
نه پريږي پر هر چا دا پنځه ورځی زمانه
پرموږ باندی به وکړی خپل اوی خدای فضل و کرم
اضافه نرخ خپل خورك به کور کی مه ساته غنم

وبل خو هم دغو مری وی هوښيار اره «تبزه»
نابوه به ځان لاهم په درب و دروب کړي بې خبره
هر څوك دی سنجوی د آخرت خپل خير و شره
حاجت نشته چی زه سقا خير و شر بيا نوم
اضافه نرخ خپل خورك به کور کی مه ساته غنم

## خاوندان د تربيې مو پښتنو وروڼو اولاد کړی

پيدا کړی انسانان قدرت هر کار اره قابل
د نړۍ له قسماقسم زحمتو شوله حامل
ورکړه شوی استعداد د زده کولو دی کامل
نل به زده کړه د کمال و علم کړی اولاد شامل
که کوښښ وی خپل اولاد به عالمان او باسواد کړیء
خاوندان د تربيې مو پښتنو وروڼو اولاد کړیء

که په خيال کی مووی داچې قوم دی خلاص شي داړیه
دروازه د علم و فن مو پر اطفالو مه نړیه
مه یه اوی لاس سعادت د دوی له ژوند څخه شړیه
تر له و بشې شي ځان چمتو کړی وژو اندون نه د نړیه
په ثمر د نو نهالو داعزيز وطن آباد کړیء
خاوندان د تربيې مو پښتنو وروڼو اولاد کړیء

اوس هیڅ شی وهیچا ته بې له خپل زیار او زحمته
باید واخلو تول کار د پښتني اوره همته
تنبلي او به بلا ده ځان ژغوره له دې عادته
که غوښتونکي یې د دنیائې د ژوندون باسعادته

په تعلیم او تربیه مو د اطفالو زړونه ښاد کړئ
خاوندان د تربیې مو پښتنو ورونو اولاد کړئ

هیواد غواړي به تلوار د آینده نسل روزل
په روزنه کې د دوی باید چې نه وي تزلزل
په دې کار کې نابودي ده چې کوي څوک تغافل
رسې هغه مقصد ته چې وي شپه او ورځ منزل

کوښښ وکړئ د وطن څخه معدوم جهل او فساد کړئ
خاوندان د تربیې مو پښتنو ورونو اولاد کړئ

د بې کسبه، بې کماله په تن ورځ کې ژوندون سخت دی
که په سن دور کتوب تربیه نه شو څوک، بدبخت دی
چې هرڅه پر چا تیریږي همغه قیمتي وخت دی
چې اولاد وي ښه روزلی دا هم تاج دی او هم تخت دی

د هر علم او فن د پاره ښوونځی ورته ایجاد کړئ
خاوندان د تربیې مو پښتنو ورونو اولاد کړئ

مریضان د جهل کړئ د علمیت په دوا جوړ
کړئ قابل د زراعت د مځکې هر ځای چې وي شوړ
د صنعت په برکت موږ د ټبر وزې کړئ موړ
د وطن په ودانۍ کې برخه واخلئ ځوان و زوړ

د یر د یو له احتیاجه مو فارغ دا خپل هیواد کړئ
خاوندان د تربیې مو پښتنو ورونو اولاد کړئ

# نوميالي پوهان

## الفرډ نوبل

يا

### هغه سړی چې خپله ټوله شته ئې د پوهاو سولي په لار کې ولګوله

الفرډ نوبل ۶۰ کاله پخوا د ۱۸۹۱ کال دډسامبر په لسمه شپه په سانریمو کې مړشو. ده له مړینې شخه یو کال پخوا خپل مشهور وصیت لیك کښلی او په هغه کې ئې ولیکل چې زما د بانکي ګټه چې

له ۳۱ ملیونو سویډني کرون شخه زیاتیږي، پنځه برخې کړي او په هغو پوهانو ناربنه ؤ او ښځو ته ئې وویشي چې د

فیزیك، کیمیا، طب، ادبیاتو او دنړۍ د سولي دپاره کوښښ او مجاهده کوي. په همدې اساس هر کال په لمه وقفي دډسامبر په

لسمه دنوبل دمړینې د کالیزې په ورځ د سټاکهلم په ښار کې بې دملیت او نژاد په نظر کې نیولو شخه هغو مستحقو ناربنو

او ښځو ته وبشل کیږي چې دهغه مستحق وي.

هره جائزه ئې سل زره سویډني کرون کیږي ددغــو جائزو ورونکي ددغو پیسو په اخستلو سربیره دنړۍ شهرت هم ځانته

غوره کوي ځکه دنوبل جائزه فرق العاده امتیاز او اعتبار لري.

الفرډ نوبل د ۱۸۳۳ کال د اکټوبر په ۲۱ دسټاکهلم په ښار کې زیږیدلی او ددینامیت په اختراع سره ئې د نړۍ شهرت ګټلی دی سره له هغه هم

دده د فعالیت شهرت محدود پاتې شو، ځکه سویډني مخترع

تقریباً د ۳۵۰ یاتو (امتیاز) خاوند ؤ چې له هغې جملې شخه ئې د بر ابز دچاودونکو موادو سره سرا و کار درلود.

نوبل ویل: له دغو اختراعاتو سره سره ما دا نشانانو دپاره ژوند آسانه کړ او ددوی دپاره مشکلات نه غواړم زه په وېره

وینم چې ګټه ځنکه نل پخپل سیوری کې دویــری او ډار هر کلی کوي.

نوبل دا حق درلود چې وېری او ډار نه لار ورکړی [redacted] ځکه د دینامیت لــه اختراع سره د

نړیوه څېړه بل شان شوه هغه وخت چې پخپله اختراع سره ئې آله او وسیله د بشر په لاس کې ورکړه په دامې حال کې چې هغه یوه ویرونکې وسله هم کڼل کېده . د نوبل دژوند په وخت کې ځینو هیوادونو په تېره بیا فرانسې او انګلستان کوښښ کاوه چې یوازې د چاودونکو موادو خاوند وې چې خپل نظامي ښه والی او تفوق تامین کړي خو نوبل ددوی له دغې مفکورې سره په کلکه مخالف ؤ، نوبل عقیده دراوده چې د جګړې خطر په همدې اندازه ډېر لیرې کېږي . که ټول ملتونه په مساوي ډول مسلح وي اساساً ده ته دا دارو چې هیڅ دولت باید پر بل دولت باندې فوقیت ونه لري نو بــل له نښتې سره دېنامیت اختراع کړی نه دی بلکه بشر له پخوا پېړیو څخه د چاودونکو موادو په پلټنه کې وو، ځکه چې بشر او یا ښه وو ایم تخنیک دغو موادو ته ډېر ضرورت دراود چې له هغو څخه په عمل کې استفاده وکړي مثلاً په غره او نورو ځایو کې د تونل په کېندلو کې نوبــــل اصلاً د نیترو ګلیسترین مخترع نه دی چې له هغه څخه ئې وروسته دېنامیت پیدا کړ سره له هغه چې خلک [نوبل چوونکی مایع] بولي ځکه د هغه حقیقي مخترع پروفیسر [سوبراد] ؤ چې په ۱۸٤۷ کال کې ئې دغه ماده پیدا کړه خو هغه پدې بوه نشو او له هغه څخه ئې استفاده ونه کړای شوه نوبل په یوې خاصې پاملرنې سره هغه مطالعه کړه .

د ۱۸۵۸ کال په جنوري کې د دریم ناپلیون د وژلو توطئه جوړه شوه اته تنه د درو بمونو په ذریعه مړه شول او تقریباً ۱٤۸ تنه ټپیان شول خو امپراطور ته کوم زیان ونه رسېد . له دغو بمونو څخه یو په تېره بیا ډېر فوق العاده زیان ورساوه چې نیترومانیت ئې دراود چې دغه ماده

د نیترو ګلیسرین له نږدې او دغه ډول موادو څخه دی، نوبل د چاودونکو موادو او مرې فابریکه د ستا کهلم په ښار کې جوړه کړېده او خپل د ضرورت ور پیسې ئې د پاریس له بانک څخه لاس ته راوړلې، خو د پیسو اصلي ورکوونکی دریم ناپلیون ؤ چې پخپله ئې خیال دراود چې پدغو موادو کې په کومه اندازه مضره قوه او قدرت شته دی او پوهېده چې د دغو چاودونکو موادو د یوې اندازې خاوند به څومره قدرت په واک کې ولري .

د دغې فابریکې له جوړېدو څخه څلور میاشتې وروسته د نوبل چاودونکو موادو د ۱۸٦٤ کال د دسمبر د میاشتې په څلورمه نېټه هوا ته والوتل او دا فریډ نوبل یو ورور او دده څلور تنه ملګري ټول مړه شول .

نوبل سره له دې هم ادې کار څخه لاس وانخست او د دغې بدې پېښې ریکلامونه ئې ترتیب کړل چې پدغه وسیله د خلکو د پاره د خپلو مصنوعي چاودونکو موادو د قــدرت او طاقت ثبوت څرګند کړي په همدې اساس ئې اــور پیسې ورکوونکي ځان ته پیدا کړل او له اوو هغتو څخه وروسته ئې بله نوې فابریکه په کار واچوله د نوبل شهرت او موفقیت ورځ په ورځ زیات شو او سمدستي ئې په برله پسې سفرونو پیل وکړه له یوه هیواد څخه بل هیواد ته او له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته په حرکت کې ؤ خلکو دی

د نور په ۳۰ مخ کې

د چینی ادبیاتو څخه :

# د میخورانو
## «نغمه»

غوږ ونیسه؛
غواړم چې تاسې ته یوه داسې
غزل چې زما دزړه آواز دی
ووایم .

« افتخار ، شهرت ، لقب او
عنوانونه په څه درد خوري؟
په هغه شي پسې باید هڅه وشي
چې په زحمت و ارزي » .

هغه څوك چې د ډېرې هوښیارۍ
ادعا کوي ، ډېر بدخلقه او
تریو تندیه وي .
اما و میخورانو ته وګوره

چې څومره خوشاله او سرخوشه
دي .
اوه ، اې خدمتګارانو بېکاره
مه کښېنئ ،

او ، مه وایاست چې په میدان
کې نوري نغدي پیسې ناشته .
ولاړ سئ ، زما چنګ آس
خرڅ کړئ .
ولاړ سئ ، هغه زما ګران کالي
بازار ته یوسئ ؛

او حتی زما وروستي اشعار د
رانیونکو د پاره یوسئ .
تر له شیان ور کړئ ، سره او
سپین زر په واخلئ .

وروسته هغه [مې] خرڅونکو
ته ور کړئ ؛
څو زموږ د پاره د [ناب مې]
راجوړه کړي .

«مې» راوړئ ؟
او پرېږدئ چې ووایم ؛
چې ژوندتون له غمه ډك دی .
آیا اورئ ، چې زه څه وایم ؟ » .

# مرجان

وماته ئې مرجان د سوغات په
توګه رالېږلی دی .
رښتیا دغه بې ساه درخته چې نه
پاڼې لري ، نه ګل ، نه ډبره ده
او نه ونه .
چا وماته رالېږلې ده ؟
لومړی ووایه ؛
دغه د ډبرې زړه چا ، در بخښلی
دی ؟
او چا دغه هدیه وماته در کړې
ده ؛
چې نه زړه دی او نه ډبره ؟

ژباړونکی ؛ محمد احسان «کارګر»

# وعده

اشنایه ؛
پرون چې دې د لمرلوېده
پر وخت د آلوبالو د درختې
تر شګوفې لاندې هغه وعده
چې تا راسره کړې وه ؛
څه شوه ؟؟ .

ښاغلې !
لومړی دا راته ووایه هغه
ګړۍ چې ما ستا سره وعده
کوله د ګل پر پاڼه چې هغه
شبنم پروت وو ؛
څه شو ؟؟؟ .

## «د ۲۹ مخ پاته»

د [اروپا ستر والګرد] باله سره
له هغه هم نوبل سره له دې چې
ډېره دبدبه او ډېرې پیسې ئې
درلودلې او پوره بډای ؤ خو

بیا هم نېك بخت نه ؤ او په
مالي خولیائي بحران اخته ؤ
او یوازې ئې ژوند نه شو کولای
له همدې کبله د ژوند تر وروستي

وخت پورې د یوې کورنۍ په
جوړولو بریالی نشو .

# چل زینه

د چل زینې نه میر محمد بابر ظهیر الدین د مغلو پاچا ته منسوب دي چې په [۸۸۸ هجري کال] پیدا سوی او په [۹۳۷ هجري کال] مړ سوی دی او ویل کیږي چې د چل زینې کار په ۹۳۲ هجري کال د ده زوی بهادر محمد کامران و پای ته و رسولی، ځینې تاریخونه د چل زینې د کار بشپړېدل د مغلو د کورنۍ و یوه بل پاچا جلال الدین اکبر ته حواله کوي چې د هغه له خوا څخه تکمیل سوی دی، په هر صورت که چل زینه بابر ته منسوبه ده که ئې تکمیل جلال الدین اکبر ته منسوب دی خو دې تاریخي ځای مفکوره، جوړېدل، هغه د ډبرین اطاق کیندل جدولونه، لیکونه او نقاشي پر کول ټول ئې د خپلو نیرو کاریګرو په همت او کمال مربوط و او یو لیک خو ئې ټکاره سید معصوم کندهاري کښلی دی چې د هغه وخت یو مؤرخ او شاعر ؤ د چل زینې د باني مفکوره چې دا مؤذن ځای ئې د یوه اطاق او زینو دپاره موندلی او ټاکلی دی او هم د کاریګرانو او حکاکانو زیاره پر دستاینې وړ دی. چل زینه که څه هم یو تاریخي یادګار دی د سیل او مېلې دپاره بیخي په زړه پوری او ښکلی دی هغه وخت چې د کندهار زوړ ښار ودان ؤ دا به په خاص ډول یو مېلې ځای ؤ ۲۳۰ کاله د مخه د هغه ښار د هغه وخت یو شاعر مرحوم عبدالرحیم هوتک چې په جلاوطنی او مسافري کې په بخارا او سمرقند کې ګرځي د چل زینې یادونه د خپل هیواد د هغه ځایو په سلسله کې چې د ده ارمان ئې داسې کوي.

﴿ بودم کښېنه په ایوان د چل زینو کښي ﴾
﴿ تماشا وکړه چې زړه دي سي پخه ﴾

اوس هم چل زینه پر سپړه پرتې چې تاریخي ځای دی د ډېر ښه منظره ئې ارې ځکه د کندهار نوی ښار، احمد شاهي ښار او د هغه شاوخوا کلي د ارغنداو بوه برخه تر اوه دلته معلومیږي چې یوه په زړه پوری تماشا تشکیلوي.

پخوا د چل زینې دالان ته ور ختل ابز څه مشکل شانه ؤ ځکه چې زینو ئې داسې یوه وسیله نه درلوده چې ور ختونکی لاس پر تکیه کړي وای هغه ؤ چې د مرحوم امان الله خان د سلطنت په دوره کې ئې و تو موډی زینو او دالان ته د اوسپنې کټاري ورجوړې کړې چې په زینو کې او هم په هغه ارد دالان ته ور ختل ئې د ډېر آسانه کړې دی. «عمرزی»

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR A.M 'KARZI'

(JANUARY) 1963

GOVERNMENTAL PRESS